# کندهار

Kandahar. Kabul
Vol.3, No.12, Hut 1341
(February 1964)



د افغانستان نوې کابینه د معظم اعلیحضرت په حضور کې

ښاغلي سردار محمد داؤد د افغانستان صدر اعظم د صدارت عظمی د مقام او د هغه د سترو مسئولیتونو تصدی د لسونیمو کلو دورې څخه وروسته د حوت پر ۱۲ نیټه له دغې وظیفې څخه خپله استعفا د معظم اعلیحضرت حضور ته وړاندې کړه چې شاهانه ذات ومنله. او عالیقدر جلالتمآب دکتور محمد یوسف د کانو او صنایعو وزیر ئې د نوي حکومت د تشکیل دپاره مامور کړ.

دکتور محمد یوسف د حوت د ۲۲ ورځې د مازیګر په څلورو بجو د ملوکانه ذات حضور ته ورغی او د خپلې کابینې غړي ئې معرفي کړل چې په دې مخ کې لیدل کیږي.

# د ښاغلي سردار محمد داؤد
## د پيغام متن د وطنوالو په نامه
## چې په کابل راډيو
## کې خپور شو

ګرانو او عزيزو وطنوالو!

په دې وخت کې چې د افغانستان د صدارت عظمى په وظيفه کې له ۹ نيم کلنې دورې څخه بس او وطن ته د خدمت د فرائضو د اجرا کولو له کوښښ څخه وروسته له دې درانې وظيفې څخه زما استعفا د همايوني اعليحضرت له حضور څخه منل کېږي غواړم چې د خپلې سپاس ګذارۍ مراتب خپلو ټولو همکارانو او دولتي مامورينو ته چې په ګډه مو کار سره کړی دی، څرګند کړم

همدا شان د هغه مسؤليت له کبله چې په دې موده کې مې د ملي دفاع د وزير په حيث او يو عمر مې د افغانستان د فداکارو اردو په خدمت کې تېر کړی دی وجداناً ځان مکلف ګڼم چې خپل د زړه له کومې صميمي تشکرات د افغانستان د باشرفه اردو ومحترمو قوماندانانو او ټولو منصبدارانو او منسوبينو ته څرګند کړم او د دوی له هغو زحمتو او همکاريو څخه چې د هېواد د دفاع او د اردو د لوړوالي په لار کې ئې زما سره يو ځای کړي دي، خپله شکريه او حق پېژندنه څرګنده کړم!

په تېرو کلونو کې د امکان په شونه چې د افغانستان د خلکو په قوي طرفدارۍ او د هغو ځوانانو په سعيه او کوښښ چې د حکومت په مختلفو ادارو کې ئې وظيفه درلوده د هېواد په اقتصادي ژوند او عمراني چارو او قسماً د خلکو په اجتماعي شئونو کې بدلون راشي.

يو کال مخکې د هېواد اقتصادي او عمراني لومړی پلان په کاميابۍ سره پای ته ورسېدی او وروسته دوهم پلان په کار واچېدی.

په دې موقع کې لازمه ګڼم د ياده کړم چې د خپل هېواد د انکشاف او ودانۍ د پاره د خپلو مجاهدانو په لار کې يوازې نه وو.

د افغانستان يو شمېر دوستو هېوادو د دې مطلب د پاره د افغانستان د حکومت سره ډېره همکاري کړې ده. د دوستۍ د اړول مظهر نه يوازې زما د حکومت د ستاينې وړ دی بلکې د افغانستان د خلکو په خاطره کې هم د ډېر په زړه پورې صورت سره ثبت شوی دی.

ډېر خوشحال يم چې د وروستيو کلونو په ترڅ کې د افغانستان د ښځو په ژوند او وضع کې دوه پلوه ژور تحول راغلی دی

[پاتې درېيم مخ وګورئ]

# کندهار

میاشتنی خپرونه

ادبی . تاریخی . اجتماعی . علمی

مسئول چلوونکی:

ا،م «کرزی»

اداره: د شهیدانو واټ

د دولتی مطبعی څنګ ته

د ۱۳۴۱ مریز کال د [حوت] میاشت

د ۱۹۶۳ میلادی کال د [مارچ] میاشت

د دریم کال ۱۲ ګڼه

پرله پسې ګڼه [۳۶]

کالنی «بیه»

په کندهار کی [۳۸] افغانی

په دننه مملکت کی [۳۲] «

په دباندنیو هیوادو کی یو ډالر

## ددې ګڼې مضامین



ښاغلی دکتور محمد یوسف نوی صدراعظم




ښاغلی سردار محمد داؤد پخوانی صدراعظم



د نوی کابینې لومړۍ غونډه

# ښاغلی صدراعظم دکتور محمدیوسف د خپل حکومت د راتلونکی کړنلاره توضیح کړه

( بسم الله الرحمن الرحیم )

## ګرانو وطنوالو!

په داسی حال کی چی د صدارت عظمی درنه وظیفه په غاړه اخلم غواړم چی د نوی حکومت د خط مشی په شاوخوا کی ستاسو سره څه خبری وکړم او د هغی په سترو ټکو چی همدا نن د وزیرانو د هیئت په لومړی غونډه کی تصویب شوی دی تاسو خبر کړم.

د ښاغلی سردار محمد داؤد ستر خدمتونه د افغانستان په تاریخ کی د ویاړنی د کو یادګارونو په حیث ثبت شوی دی

څرنګه چی محترم وطنوال خبر دی والاحضرت سردار محمد داؤد چی څه د پاسه ۹ کاله ئې د صدارت عظمی مهمه وظیفه په غاړه درلوده او دا وظیفه ئې په پیاوړی وطن پالنه، جدیت او کفایت ترسره کوله په دې ورځو کی ئې له خپلی وظیفې څخه استعفی وکړه.

د افغانستان د حیثیت او ملی ګټو د ساتلو په لاره کی د افغانستان د اجتماعی او اقتصادی شئونو د لوړوالی او د داخلی او خارجی سیاست د متینو اساسانو د بارهٔ د سردار محمد داؤد ستر خدمتونه ډیره واضح او ځلانده دی چی شرح او بیان ته اړه نه لری او د افغانستان په تاریخ کی د دوی د تصدی د دوری د افتخار نه ډکو یادګارو په حیث ثبت شوی دی.

زه یوازی غواړم په دې وخت کی چی د غه والاحضرت دا درنه وظیفه پریښودی د یو افغان او داسی همکار په حیث چی همیشه می د هغوی له لارښوونو څخه استفاده کړیده، د والاحضرت حضورته د خپلی ډیری خوشالی مراتب وړاندی کړم او د اوی خدای له دربار د هغوی روغتیا او نیکمرغی غواړم.

زه باور لرم چی ټول افغان ملت زما سره د دې خوښی په عرض کولو او خالصانه دعا کی شریك دی.

## د ګران ټولواك لوړی هیلی

د معظم ټولواك همایونی اعلیحضرت حضور چی لوړی آرزوګانی ئې همیشه د یوې متینې او ترقی غوښتونکی نقشې په اساس د هیواد وړاندی تګ او د چارو تحول ته متوجه دی، ما ته افتخار وباښه چی د افغانستان نوی کابینه جوړه کړم. دا افتخار په حقیقت کی د هیواد ټولو ځوانانو ته

عاید دی او زه خپله وظیفه گڼم چې د دې لوړ اعتماد په نسبت خپله د زړه خالصانه شکریه د شهریاری ذات حضور ته عرض کړم .

## گرانو وطنوالو!

زموږ گران وطن افغانستان د خپل تاریخ په وېاړلې دوره خصوصاً په معاصرو دورو کې چه کوی له پولو پېښو سره مخامخ شو چې زموږ پلرونه دېوې دینی او ملی فریضې په حکم له هغو

سره د مقابلې دپاره چمتو شول په هغه وخت کې لوی انقلاب خپور شوا او د دنیا د هیوادو حالات ئې

بو په بل بسې د علم او نوی تخنیک له لاری بدلول زموږ په هیواد کې د وطن د دفاع مقدسې وظیفې

د دې موقع ورنکړه چې د دې هیواد خلک لکه څرنگه چې ښائی د خپلو مدنی، عرفانی او اقتصادی شئونو داوږدو لو کار ترسره کړی او د نوی تمدن په او به لاره کې له نورو هیوادو سره یو

ځای گام او قدم واخلی .

تو ان چې د هغوی د مجاهداتو له برکته افغانستان د دنیا د آزادو هیوادو په جرگه کې خپل لایق مقام ساتلی او ترسره کړی دی .

پر موږ لازمه ده چې د نېرو زیاتو د تلافی دپاره اقدام وکړو او په ډېر زیار او کوښښ هغه فاصله لنډه کړو چې د عصری تمدن له نظره زموږ د هیواد او د دنیا د نورو وړاندې تللو ملکو ترمنځ

تولیدشو ېده ترڅو چې د خدای په مرسته یوه ورځ د دې وطن زامن دغه تفارت بیخی له مینځه

پووړای شی .

دا هغه درنه او ویاړلی وظیفه ده چې د نیری کابینې په دوره کې شروع شوېده او باید په زیاتو هغو ابتکاراتو او تحولاتو سره زموږ له خوا تعقیب شی

چې د عصر مقتضیات او د حالاتو انکشاف ئې ایجابوی .

دا وظیفه ما او زما همکارانو سره له دې چې د لاری په سختوالی اود توښې په لږوالی پوره خبر یو

منلې ده او هیله لرو چې هغه د خلکو د ټولو طبقاتو په اتفاق په تېره بیا د هیواد د ځوانی او منوری طبقې په ملگرتوب چې د افغانستان تاریخ د تحول او انتقال په دې دوره کې ترټولو ستر ملی مسئولیت

د هغې په غاړه پروت دی ترسره کړو .

ښکاره ده چې د دا سې مهمې او ستری وظیفې د سرته رسولو دپاره د یوې اساسی او ښکاره خط مشی غوره کول او ټاکل اړو چې زموږ فعالیتونه په صحیح

استقامت سم کړی او مطلوب هدف ته ئې نږدې کاندی .

## ستر مطالب

د دې خط مشی ستر مطالب چې د معظم تولواک همایونی اعلیحضرت؛ د افغانستان د خلکو آرزو- گانې او د زمانې ایجابات ئې منبع گڼل کېږی په دې ډول خلاصه کېږی:-

۱- د اسلام د مقدس دین ابدی او نه فنا کېدونکی لارښوونې تل زموږ د اعمالو سرمشق او لارښوونکی دی .

۲- ترټولو ستره او لویه وظیفه چې موږ ورته ځان مکلف ګڼو د افغانستان د خپلواکۍ د خاورې د تمامیت او حقه حقوقو او ګټو ساتل دي.
نوی حکومت د پخواني حکومت په شان دغه مقدسه وظیفه د خپلو ټولو وظایفو په سر کې ټاکلې او خپل ترټولو ښه زیار به هغې ته وقف کړي.
۳- د اقتصاد په ساحه کې د پلان جوړولو او رهبرۍ شوي اقتصاد سیستم د اقتصادي بنیې د تقویه کولو او د هیواد د خلکو د ژوندانه د سویې د لوړولو د پاره دوام کوي، د پرزیار به و باسو چې د روانې پروژې او د دوهم پنځه کلن پلان نوې پروژې د خپل مالي توان او امکاناتو په حدودو کې تطبیق او عملي کړو. انفرادي تشبثات به د هغه اقتصادي سیاست په چوکاټ کې چې غوره کړی مو دی، نور هم حمایه او تشویق شي.
۴- د هیواد د اداري په طرز کې به د دیموکراسۍ د تطبیق د پاره د هغو پیشنهادو له مخې اساسي او مناسب بدلون راولو چې د پخواني صدراعظم والاحضرت سردار محمد داؤد له خوا ملوکانه حضور ته وړاندې شوي او اساساً د شاهانه ذات له خوا منل شوي دي.
حکومت دا تحول، چې اصلي مقصد یې د ټولنې سلامتي او هدف یې په اجتماعي او حیاتي شئونو او قوانینو د تدوین په چارو کې خلکو ته د زیاتې برخې ورکول دي چې اجتماعي عدالت او د فردي حقوقو مصئونیت ترسره کوي یو مهم ضرورت او د هغه عصر له ایجاباتو سره مطابق بولي چې یې کښې ژوند کوو.
حکومت تصمیم لري چې دې مبادیو ته چې د هیواد د خلکو په قانوني سرنوشت کې خاص ارزښت لري د خپلو نورو وظایفو په سلسله کې اهمیت ورکړي او سمدستي د متخصصینو او پوهانو په همکارۍ خپل مطالعات په دې باره کې شروع کړي او تر هغه ژورې کتنې او غور وروسته، چې د موضوع اهمیت یې ایجابوي د قانوني مراحلو له ترسره کولو وروسته د هغه د تطبیق پروګرام تر اجرا لاندې ونیسي.
حکومت به د بې طرفۍ عنعنوي سیاست او په داو کې د نه ګډون او د آزاد قضاوت لاره چې مقصد یې د هیواد خپلواکي، ملي حاکمیت او د خاورې د تمامیت ساتل او د متقابل احترام او اعتماد په اساس له ټولو خلکو او ولسونو سره د دوستانه علایقو ټینګول دي، او له دې لارې سولې ته خدمت کول او د هغې په رڼا کې په سوله کې ژوند او زموږ د هیواد د انکشاف او د خلکو د ژوندانه د سویې ته والی دی، تعقیب کړي.
د ملګرو ملتونو منشور ته پابندي، د بشر د حقوقو د اعلامیې احترام او د سرنوشت د ټاکلو د حق او د استعمار او د هغه د بقایاوو د لغو کولو طرفداري په مختلف شکلونو د دنیا په هر ګوټ کې چې وي او بین المللي همکاري د افغانستان د سیاست له اساساتو څخه دي.

د افغانستان حکومت د باندونګ د کنفرانس اساسات او په بلګراد کې د بې طرفو هیوادو د ټولنې اعلامیه چې مقصدئې د ولسونو ترمینځ د دوستۍ او ښه تفاهم د پیدا کولو د پاره له قوې څخه د صرف نظر کولو له لارې په دنیا کې د سولې ترسره کول دي یو ځل بیا تائیدوي.

## د افغانستان حکومت د پښتونستان د روا مطالبو په کلکه طرفداري کوي

د افغانستان حکومت د خپلو خلکو د آرزوګانو په بنا د پښتونستان د خلکو د روا مطالباتو همېشه طرفداري کړې او نن هم په کلکه د هغو طرفداري کوي. زموږ آرزوګانې د پښتونستانیو ورونو د هیلو په مطابق د هغوی د ملي آمالو ترسره کول دي او د پښتونستانو ورونو د دې مشروع حق د ترسره کولو د پاره به د افغانستان کوښښونه په سوله‌غوښتونکو لارو دوام وکړي.

هیله لرو چې د پاکستان حکومت به واقع بینۍ او د زمانې د مقتضیاتو سره سم د پښتونستان د خلکو د ملي آمالو او آرزوګانو احترام وکړي.

له دوستو دولتو سره به د افغانستان مناسبات د ملګرو ملتو د منشور د اصول په اساس په متقابل احترام او اعتماد او صادقانه همکارۍ د دوستۍ په تقربي او پراختیا ولاړ وي.

د خوشالۍ ځای دی چې د افغانستان روابط له دوستو دولتو سره د ملي ګټو سره سم او د بین‌المللي اساساتو سره موافق، په زړه پورې انکشاف کوي او توسعه مومي.

افغانستان د اسلامي مملکتو سره چې دیني او تهذیبي مزو سره نژدې کړي یو، خپلو مناسباتو ته خاص ارزښت ور کړی او د ورور ګلوۍ د دغو علایقو د زیاتې تقویې په لاره کې ئې کوښښ کړی دی او دغه کوښښونه به دوام ولري.

### افغانستان له ګاونډیو هیوادو سره د خپلو روابطو د پراختیا او ساتلو د پاره کوښښ کوي

افغانستان تل له ګاونډیو هیوادو سره د خپلو مناسباتو د ساتلو او ټینګوالي په لاره کې کوښښ کړی دی او په آینده کې به هم د دغې هیلې د پاره چې په ښه ګاونډیتوب ولاړه ده کوښښ وکړي.

د افغانستان مناسبات زموږ د دوست او ګاونډي هیواد اتحاد جماهیر شوروي سوسیالستي سره له اوله څخه د ښه ګاونډیتوب او متقابل احترام له مخې روان دي او دغه علایق په وروستو کلو کې په نژدې تماسونو او د دواړو هیوادو د مشرانو په تګ راتګ او ګټورو او په زړه پورې فني اقتصادي او فرهنګي مرستو سره د هیواد د ملي ګټو سره سم پراخ او ټینګ شوي دي. د افغانستان حکومت به د پخوا په شان خپلو کوښښونو ته د دغو روابطو د ساتنې، تقربي او پراختیا د پاره دوام ور کړي.

د ایران له ګاونډي هیواد سره د افغانستان دوستانه او ورور ګلوي مناسبات په زړه پورې په ښه نیت او د ښه ګاونډیتوب د روابطو په اساس دوام لري.

افغانستان ته د اعلیحضرت د ایران د شاهنشاه د راتګ او د دوی جمیله کوښښونه او د افغانستان په ترانزیټ کې اسانتیاوې د دغو دوو مسلمانو ورونو هیوادو ترمنځ د دوستۍ علایق نور هم تقویه کړېدي.

له بل ګاونډي هیواد د ولسي چین د جمهوریت سره د افغانستان روابط ښه دي او نیک ګاونډیتوب او متقابل احترام له مخې دوام لري او په ورو ستیو کلونو کې دغه مناسبات د دواړو مملکتونو د مشرانو

په مسافرت او د دوستۍ او د متقابل ښېرې د ترون په لاسلیک سره زیات تقویه شوي او په دې وختو کې د دواړو هیوادو ترمنځ د اوسنۍ سرحد د کرښې د رسمي تجدید او د سرحدي ترون د لاسلیک د باره

موافقت چې په نظر کې ده په نږدې آینده کې عملي شي په دغه لیاره کې یو بل مثبت ګام کښېښوول کیږي.

د امریکا له متحده ایالاتو سره د افغانستان

دوستانه مناسبات د ښه نیت او متقابل احترام په اساس انکشاف مو[illegible] دای په فني، اقتصادي او فرهنګي مرستو او همکاریو سره دغه روابط پراختیا مومي.

د امریکا د متحده ایالاتو د جمهور رئیس جلالتمآب په بلنه د اعلیحضرت مسافرت چې په راتلونکي

دوبي کې به وشي، د دواړو مملکتونو ترمنځ د روابطو په تحکیم او ټینګښت کې بل مثبت قدم کښېښوول کیږي. د افغانستان حکومت به د امریکا د متحده ایالاتو سره د خپلو دوستانه مناسباتو د

ساتنې، تقویې او پراختیا د پاره خپلو کوښښونو ته دوام ورکړي.

افغانستان خپلو روابطو ته له هغو هیوادو چې په یوه منطقه کې ورسره اوسي ځانګړي اهمیت ورکړي

دی لکه چې د افغانستان او د دغو مملکتونو ترمنځ دوستانه او رضایت بښونکي روابط موجود دي.

د هند له جمهوریت سره د افغانستان مناسبات د عنعنوي دوستانه روابطو په اساس د نیک او

دوستانه تفاهم سره ملګري دي.

د اعلیحضرت همایوني په بلنه د هند د جمهور رئیس جلالتمآب نږدې راتلونکي مسافرت د دغو روابطو په زیاته تقویه کې مؤثر دي.

دپاکستان دحکومت دیوارخیز حرکت په اساس
د افغانستان او پاکستان ترمنځ روابط
لا تراوسه هم نه دي ښه شوي

په خواشینۍ سره باید ووایو چې له پاکستان سره د افغانستان روابط د افغانستان د آرزوګانو

په خلاف او په دغه لیاره کې د کوښښونو سره تراوسه پورې لا دي ښه شوي هغه کشاله چې د پاکستان د حکومت دیوارخیز حرکت په اساس چې د دغو دوو هیوادو ترمنځ [illegible] روابط

وشلول اوس هم روانه ده، د توقع په خلاف هغه مفاهمه چې په نیویارک کې د عادي وضع د اعادې

د پاره د دواړو هیوادو د خارجه وزیرانو ترمنځ د ایران د دولت په کوښښ شوې وه تراوسه لا د پاکستان د حکومت له خوا په ښه نیت سره نه ده تلقي شوې، او اې نتیجې باني شوېده.

موږ په دغه زمينه کې د ايران د اعليحضرت شاهنشاه د کوښښونو موفقيت د ههه ښه نيت په اندازې پورې تړلی مربوط ګڼو چې د پاکستان د حکومت له خوا په دغه لياره کې ښکاره شي .

د افغانستان حکومت د هيواد د انکشافي پلانو په ورانده ي بيولو کې د دوستو دولتو له بې غرضانه مرستو او همکاريو څخه صميمانه ممنونيت او قدرداني کوي .

د شوروي اتحاد د سوسياليستي جماهيرو او د امريکا د متحده ايالتو د و پلو وړ مرستو نه علاوه چې تل په زړه پورې او د تقدير وړ دي ، د المان د فدرالي دولت دوستانه مرستې چې مخ په زياتيدو دي د خوښۍ موجب او د يادولو وړ دي .

د نورو دوستو مملکتو له همکارۍ او مرستو څخه هم صميمانه امتنان کوو .

د افغانستان حکومت هيله لري چې دغه مرستې او همکارۍ په آينده کې هم دوام او زيات اختيار او ومومي او د نېک تفاهم او ښو مناسباتو د تقويې په لياره کې چې د دغو دوستو دولتو سره وجود لري له پخوانه زياتې ګټورې او موثرې واقع شي .

## د افغانستان حکومت د ملګرو ملتو اختصاصي مرستې تقديروي

د افغانستان حکومت د ملګرو ملتو د اختصاصي موسسو مساعدت او همکارۍ چې تر اوسه پورې شوې دي تقديروي او دوام او پراختيا ئې ګټوره او په زړه پورې ګڼي .

په بين المللي ساحه کې د افغانستان د حکومت د سياست هدف په ملګرو ملتو او په نورو بين المللي تړونو کې د پخوا په شان د هيواد د ملي ګټو ساتنه او د عمومي سولې په لياره کې خدمت او د بين-المللي همکارۍ د پاره د زيات تفاهم ايجادول دي ، د دغه مطلب د پاره ... ظر کې ايولو سره سره په افغانستان مرقف د هغو مسئلو په مقابل کې چې اختلافي نري ورسره مخامخ ده د تل په شان په

آزاد قضاوت ولاړ دی او د افغانستان حکومت به هر قدم چې امري ناحيې څخه د پادوامه سولې د ټينګولو په لياره کې واخيستل شي و ستاينې داق د حکومت د خط مشي اساسي ټکی .

زموږ د کاميابيو او پرمختګ درجه چې د دغه خط مشي په تعقيب او تطبيق کې به تر لاسه بيا به دې لحظه کې چې د يوه تحول په درشل ولاړ يو د ملت د تولو وګړو په استقبال او مرسته پورې اړه لري .

موږ ټولو افغاني ښارينه او ښځو ، د معارف منسوبينو ، د دولت مامورينو او د ... اد ټولو وطن دوستو پوهو زلميانو ته بلنه ورکوو چې په دغه لوی اقدام کې زموږ سره کومک وکړي او د دغې عالي وظيفې په سرته رسولو او د هغه مسئوليت کې چې نن په غاړه لرو ، کلونه د وطن په آينده ژوند کې باقي پاتې شي ، له حکومت سره مرسته او ملګرتيا وکړي .

د خدای په ياری او د خلکو د مرستې په اعتماد د خپل رعيت پالونکي او ترقي غوښتونکي پاچاه په ارشاد او لارښوونه به کار پيل کوو .

« و من الله التوفيق »

زموږ

# مجله

# د اجتماعي بدلون په هکله کې دي

تغیر او تحول د کاینا تو نه بدلېدونکي دود دی همدغه ابدي قانون دی چې هم د انسان په ژوند کې او هم د طبیعت په مظاهرو کې بدلون راولی که چیرې په انساني ژوند یاد تحولتو په اجتماعي شئونو کې داو په سره کوم تغیر نه پېښېدای نو تراوس پورې به لا انسانان د غرونو په غارو کې پراته وای او هیڅ راز مادي او معنوي پرمختګ به ئې په برخه سوی نه وای.

داچې موږ د ولسونو د ژوند په هره برخه کې د تاریخي استناد له مخې څرګند تحولونه وینو داد فطرت هغه ازلي سنت دی چې تل تر تله دموجوداتو او بشري ولسونو پر حال مشتمل دی.

خو هوښیار انسان او پوه جامعې هغه دي چې د وخت بدلون وپېژني او د زماني د ایجاباتو نه پوره نظر وګوري

کوم ولس چې د اجتماعي تحولاتو د سیر نه ښه ملتفت کېږي او د زماني نه بدلېدونکي دود نه ښې مثلاې

نو هغه ملت به بیا د تمدن له کاروان څخه د پرورسته پاته کېږي یا به بېخي د فنا کندې ته ولوېږي او هغه هم په داسې

حسرت سره چې بیا به ئې د تاریخ پاڼو نکې نوم او نښان هم نه دلای نسي.

په اجتماعي ژوند کې هغه ولس نېکمرغه دی چې د وخت

تقاضا پېژني د نوو شرایطو سره خپل ژوند برابروي او ورو؛ ورو دارتقا او اجتماعي

نهضتونو په لور د خپل ولس دسوبې سره سم ګام اخلي.

د افغانستان ملت هم د تاریخ په جریان کې خپله وظیفه ښه پېژندلې او خپلو مسئولیتونه پوره ملتفت سوی او وخت په وخت ئې د اجتماعي سمون دپاره خپل نقش لوبولی دی.

خو داچې نن زموږ په ولسي او اقتصادي ژوند کې نیمګړتیا موجوده دی او موږ نسبت د دنیا و مترقي هیوادو

ته وروسته پاته یو بلل کېږو یا د تمدن وسایل د پر ابز مهیا سوي دي دا د اوږد تاریخ د استعماري سیاست علتونه وه چې موږ ته ئې فرصت رانکړ

چې د خپل قام او ملت د ښېګڼې او آرامۍ دپاره په زړه پورې ګامونه واخلو او

ځان د نړیوالو سره برابر کړو.

لیکن بیا هم هر کله چې وخت زموږ سره مرسته کړې ده، زموږ خپلو اجتماعي او اقتصادي ایمګړتیاوو ته ملتفت سوي یو او د خپلې جامعې د ترقۍ دپاره مو د خپل توان سره سم زیار او زحمت سپمولی دی.

داچې اوس وروسته له ډېرو کالو څخه ښاغلي سردار محمدداؤد استعفاء کړه البته موږ او د افغانستان تاریخ به هیڅکله د هغه وطن پرست پښتون د افتخاره ډکې کارنامې هېرې نه کړو او تل به ئې یادوو خو داچې اوس کابینه نوې سوه او مملکت د اجتماعي تحولاتو په آستانه کې ځای لري نو زموږ د هېواد ټولې طبقې زیات مسئولیت هم لري په تېره بیا ځوانه او روښن فکره ډله باید خپل دریځ او تاریخي مسئولیت ته تر ټولو ډېره پاملرنه ولري.

نن زموږ لوی مسئولیت دادی چې خپل شخصي کدورتونه او خوابدۍ یو مخیزه پرېږدو د اتحاد او یووالي لاسونه سره ورکړو د خپل ملك د ترقۍ او د خپل واس د آرامۍ په غرض ربړونه وګالو.

دا یو عقیده باید همېشه د ځانه سره په کلکه وساتو چې د هېواد د ترقۍ په لار کې نه یوازې یو سړی او یا څو کسه مسئول دي بلکه د ملت هر فرد په هره وظیفه کې چې وي د خپل وطن او د خپل تاریخ په وړاندې درونه مسئولیت لري.

څرنګه چې وطن د ټولو کور دی نو ټول اوسېدونکي ئې هم باید له حقوقو څخه برخمن سي او هم ئې په ساتلو او ودانولو کې د زړه له کومې برخه واخلي زموږ اوسنۍ دوره د ځان ځانۍ دوره نه ده بلکه باید د جامعې په خیر او اعتلا کې خپل شخصي سعادت وپلټو او ځان د هغې وظیفې ود وګرزوو چې عصر، راتلونکي نسل او تاریخ ئې زموږ څخه غواړي.

ام. کرزی.

د ثقافة الهند له عربي مجلې څخه

دښاغلی [ نجیب ] ترجمه او تلخیص

# ویدانت

ویدانت دهند دهغې اخلاقي او دیني فلسفې نوم دی چې نشأت ئې د ډېرې زمانې راهیسې شوی او تراوسه پورې ئې لا اثرات او ډېر باقي دی چې نطابق ئې موږ ترن ورځ د تصوفو له اساساتو سره په بشپړ ډول کولای شو

د ویدانت فلسفه چې اساس ئې پرابدي سعادت بنا او بدني لذائذ یا د دنیا ثروت او مادي امتعې ئې د رسیدو وسیلې نه دی د [ اوپنې شید ] له تعلیماتو څخه ئې نشأت کړی دی دا فلسفه زموږ روحې قواؤ ته پراناینت او حب ذات یا ندې چې مذموم خوبونه دي تسلط ور کوي اراده موراثر بیه اوژوندمو د حق او صداقت په روښنائې سره صفا او سپېڅلې گرزوي . د وهم او خیټو وسوسو چې د شهرت یا پېڅابو رغبتو یا څو نکي دي قلع و قمع کوي ولې چې دا خو و هرچا ته ترلمرلا څرگنده ده چې د ټولو شرو او فسادو منبع غیر له عقیدې او ایمان څخه بل شی نه دی .

## پاك ژوند

د پټ روح مشاهده دخپل بدن په اعماقو کې چې یو ضروري کار دی بېله د نفس او ژوند له پاکوالی څخه په بل شي سره امکان نه لري یعنې څېر کې او ادرا کې قوه پدې لار کې هیڅ کار نشي کولای البته ناسی به پدې مورد کې بو ښتنه وکړي چې د روح د مشاهدې لپاره د زړه ثبات د نفس و ضبطېدو

اره څرنگه ضرورت پیدا کولای شي زه وایم ددې کار له پاره صرف دنړونکی اشاره یا د علم کسب او تفکر کفایت کوي پسله دې څخه بیا دا سوال و میدان ته راځي چې موږ او ناسي له اخلاقي ښوېدو څخه څرنگه زغورل کېږو ددې مهمې مسئلې حل زموږ د مضمون اصلي روح او د ویدانت د فلسفې تراحتوا لاندې دی .

روح د جسد لپاره مادي عضوه نه ده او نه د کوم خاص مکان مقر ورار ه شته چې غیر د عقل له صفا والي او پاکوالي څخه د زړه دی لادراك وشي بالفرض که موږ ئې د درك کېدو اراده په مستقل صورت سره بېله بدنه څخه وکو خدای خبر چې بېله

غلبې او تسلطه څخه د عقل او حواسو د ی د مراقبې یا خوب له لاری څخه په بل شي سره و کومې مطلوبې نتیجې ته ورسېږو .

## پیدایښت

د علل او معلول د بحث سلسله خو ډېره اوږده ده چې آخرئې و اومرې علل نه منتهي کېږي بل دا خو محققه ده چې د موجوداتو پیدایښت له لاشي یعنې عدم څخه هیڅ امکان نه لري او د او مرنی علت له وجود څخه چې مکون ئې دی هیڅ انکار نشي کېدلای دا حقیقت صرف

په هغه مدبر او حکیم وجود
پوری منحصر دی .
د نړۍ هرشی چی پـــوېږ بل
باندی د منفعت وسیلې دی د
هغه ذکر شوی علت په برکت
سره د پراخوالی او د ډېرښت
قـابل گرزی یعنی نقصان او
کمبود ئې سره له استعماله
چندانی نه محسوسیږی ښائی
چی تاسی نه به په دې مورد کی
کوم شك په زړه کی درپیدا
شی چی ددې بې اندازې موجو-
داتو پیدایښت چی د حـد او
اندازې اټکل ئې امکان نه
لری څرنگه پـه داسی اسانه
طریقه سره محـکمیږی؟ یوه
ورځ سوسیا کتیونـــوس لومړی
شاگرد له خپله پـــلاره څخه
همدغه پوښتنه وکړه پلار ئې
وبوې نږې ونی ته داشارې په
ترڅ کی ورته وویـل: ورسه
ددغی ونی میوه راوړه نوموړی
شاگرد هم ورپاڅیدی او ډېر ژر
ئې دهغی درختی میوه دده و
حضور ته کښېښوله پـلار ئې

پوښتنه څخه وکړه تـه ددې
میوې په مابین کی کوم شی
وینـې .
زوی: یه .
پلار: نو پر منځ باندی ئې سم
نیمی کړه .
زوی: داده سم نیمی می کړه .
پلار: په منځ کی ئې کوم شی
ښـکاریږی که یه ؟
زوی: یوه وړه هندکه ده .
پلار: دا هندکه هم مانه که
وگوره چی په منځ کی ئې څه
شی دی .
زوی: داده مانه می کړه خو
په منځ کی ئې کوم شی نه
ښـکاریږی .
پلار: زویه نو وپوهیږه چی
ددې ددې هندکی پـه میانځ
کی کوم بل داسی جوهر وجود
لری چی زموږ او ستاسی ستر گی
دهغه له درك څخه عاجزی دی
همدغه جوهر دا درخته شنه
او داسی نر بره لویه کړه تعجب
مه کوه زه او ته حتی د نړۍ
ټوله موجودات همدغه جوهر

پیدا کړی پـــو چی ادراك د
څرنگوالی ئې زموږ مصنو-
عاتو له توان او طاقت څخه وتلی
خبره ده وختی چی د مبدع
حقیقی اکملیت پـدې صورت
سره وموږ ته ثابت شو نو بیا د
هومره بې انـــدازې شیانو د
پیدایښت سوال په مختلفو شـکلو
سره هیڅ نه پیدا کیږی .
قدیس به [مندا کاا و بنی شید]
کی وایی ددې بې انـــدازې
موجوداتو پیدایښت ماسیوا د
وجود حقیقی او اساسی له ظهوره
څخه بل شی نه دی یعنی دادی
هــم درمعلومه وی چی دلمر
سپوږمۍ او د ټولو موجوداتو
اروحان یا پخپله موجودات
ددغه وجود مطلق د مظاهرو
اجزادی ژوند، کیفیتونه، صفات
اعمال او حرکتونه ئې اشکال
او مظاهر گڼل کیږی ددغه
مبصر حقیقی قـوه ده چی اور
لگوی، لمر روښانه کوی، باران
اوروی، مطلب دادی چی غیر
ده له وجود څخه نور ټوله

شیان د زیاتوب یا کمبود یا زوال ارفنا به محل کی دی دی له کوم شی څخه نه دی پیدا شوی بلکه غـرونه، بحرونه

نباتات او نور دمخـکی دمخ جوهرونه چی زموږ ژوندیوری موقوف دی ده پیدا کړیدی او دی پرورش ور کوی .

## پوازنی ژوند په تولو کی

لکه څنګه چی دبدن ژوند په روح سره دی همدغه شان ټه بیا فردی روح په اوی روح (روح

اکبر) سره حیات او وجـود پیدا کوی د وبدات دفلسفي

په اساس سره فردی روح په فردی جسد او لـوی روح په

فـردی روح کی متحرك او متمرکز دی او د ژبېږدو په

زمانه کی پدنونه په اغوستل کیږی او پـله څو عمره څخه بیا زاړه او نور پهواغوستل شی

یعنی دادی و ناسی ته معلومه وی چی اروحـان ابـد اوی

اجساد عارضی او فانی دی یعنی دتناسخ سلسلهٔ ئي نه شاپدو نـکی ده بل دا لوی روح [روح اکبر] احتوا او استقرار دعـالم او

چاهن ژدور او بې ژده قوی او ضعیف لنده ئي داچی د تولو ژوندیو موجوداتو پـسـهٔ بدنو کی پټ موجود وی .

د [ ایـسټ لټریچر ] دکتاب څخه

(دبناغلی «خ» ترجمه)

## دشعر او موسیقی

## پیدایښت

دانسان علایق او تمایلات پرڅو دوله ویشل کیږی .

لـومړی؛ انس . دوهم؛ محبت . دریم؛ عشق . څلورم؛ جنون .

انس؛ دیوه سړی دبل شی سره په تمایل او استو ګنه سره پیدا کیږی .

مینه یامحبت: تمایـل د یوه

سړی دبل سړی سره وی خو درجهٔ ئي تر انس لوړه ده مګر عشق بیا ترمینی لاهم لوړ او همغه یـوه عمری عـلاقمندی ده د

معشوق سره کله چی د عشق درجه پـسې بـالا ـو او شدت ومومی نو دجنون او لېونتیا حدته رسیږی، دجنون پهمرتبه

کی انسان عجیب او غـریب حرکات کوی او په فوق العاده چارو سره پیل کوی پدې وخت

کی اعصاب کوم احساسات چی اری دلاسهٔ ئي ور کوی او سړی په اعمالو او حرکاتو کی بې اختیاره وی .

ددې دوله څخه په تیره کی اوی، اوی عاشقان تېرسوی دی چی و کړنو او حرکاتو ته ئي

موږ مطلق جنون وایو . اودا ددوی کارونه نه ددوی په کتۀ تمامسوی دی نه دبل چا، مثلاً [د سپی دپښومچول][شپه او [دووالـم مخ وګوری]

ورځ ژړا] او [غر کېندل] او نور
د بشري ټولنو مقتدرو اشخاصو
په چې ښکلې او ماهرې ښځې د
خپل ځان دپاره اختصاص کړې

او نور يې د هغوی څخه محروم
کړي وه يا پخپله د ښايسته ښځو
له خوا د عاشقانو ته د ياس جواب
ور کول د هغو په لېونتوب تمام

سوي دي او موږ پخپل شا او خوا
کې کوم انکلونه چې اورو
يا ئې د تاريخ په پاڼو کې وينو
د ډېر ځله دا لېونتوب په نارينه ؤ

کې موندل کېږي .
دا ځکه د نارينه ؤ غريزي
طبيعت نسبت و ښځې ته ډېر
طغيان لري اما داچې په ښځو

کې د پادولو او د عشقي کارنامې
ته دي ذکر سوی نو ددې دا
معنی ته ده چې دوی په احسا-
سات نه لري يا داچې نه په

عاشقيږي بلکې علت دا دی چې
ښځه پخپل تمايل او غوښتنه
کې نسبت و نارينه ته نا اميده
نه پاته کېږي او د رد جواب نه

اوري فقط يو شخص چې د ښځې
د خواهش څخه ئې سر کښې

و کړه هغه حضرت يوسف « ع »
وو .
عموماً په انسان کې چې عشق
پيدا کېږي په مجردو اشخاصو

کې وي په تېره بيا په ځوانی کې
علاج ئې واده کول دی .
عشق زموږ په جهان کې لوی
تحولات راوستلي او غټې کار-

نامې ئې ياني دي چې تواريخ
ئې بيانونه کوي. له دې وروسته
په دغه عشقي مجاز کې څه نور
شيان هم په وجود راغلل لکه

څه شی ؟
دغه اشخاص چې د معشوقې له
وصاله محروم سوي او د خپل
مطلوب د ورتګ څخه وشړل

سوه د خپل عشق د اظهار او د
معشوقې غوږ ته خپلې ګريانی
او بيانونه ور رسول او بيا داچې
په هغو کې هم اغيزه وکړي دي

خبرو او بيانو قافيه او وزن
وموندله او [شعر] ئې نوم سو

کله چې بيا هم دغه بې قافيه او
وزن برابري خبري د معشوقانو

تر نظر ښه وا نه يسېدې نو ددې
لامله وکړو د شعر و پېلو بنا

کښېښوله داسې چې په لومړي
سر کې خو شعر فقط د عاشقانو
د خيالاتو د اظهار دپاره ؤ پسله
هغه کرار، کرار د تمثيلونو په

نورو خبرو کې ور داخل سو
چې حکايتونه، تاريخي پېښې
او نوري خبري په نظم
سوې نو ځکه شعر څو ډولونه

او رنګونه پيدا کړل .
وروسته دې خبري ته فکر وکړه
شو چې دا بې وزن او قافيه
برابري خبرې د موسيقي د يوې

آلې سره وويل شي چې په تاريخ
کې لومړی سړی د يونان شاعر
[هومر] دی چې د خپلې منظومې
تاريخ ئې د يو ډول ساز سره چې

په هغه وخت کې رواج سوی ؤ
ويلې دي . لېکن د هندوانو په
عقيده سره د موسيقي لومړی
پيدا کوونکی [مادېوجي] دی

د ختيځو هېوادو محققينو د
موسيقي په باره کې ډېري عميقې

او ژوري پلټنې کړي دي چې
د موسيقي وجه تسميه ومومي

د ژبپېژندلو له نقطه نظره
موسيقي يوناني کلمه بلل سوې

ازموجد ئې [میوزنه] ګڼل شوي دي .

دشعرمروجین چې په تیره کې دیرشوي دي او په وجه ئې داده

چې د سلاطینو په دربارو کې اوی منزلات ددوی په نصیب شوي دي او پدې وجه شعر هم دیرښت موندلی دي .

همدارنګه چې باس مو وویل د موسیقي پیدا ښت او دیرښت د عشق څخه شوی ، او دا هم ویل شویدي چې د موسیقي

لومړی آله [نـل] دی دغه صحرائي نل چې پلښه آواز او ترنم سره ئې زړه او فکر ته فرحت حاصلیږي .

د موسیقي نغمې په لومړي سر کې په یوه جانګداز او محزون لحن سره وي او هرڅوانه چې په ئې حـزن دیر ؤ هغومره به

مونږ ؤ همداسې لکه شعر په موسیقي هم دولونه او شعبې

وموندلې ، اروپائي موسیقي او شعرسیاسي ، اجتماعي او ولسي

دي آسیائي عمومـاً عشقي وي .

تجربو مونږ ته ثابته کړیده چې دقیق ترین فکر او عـالیترین خیال د شعر او مـوسیقي په وسیله د افرادو په مغزو کې ځای نیسي افکار او خیالات د موسیقي او شعر په واسطه بالکل نه هیریدونکي دي ، داوجه ده چې په دیـرو مذهبو کې ئې

عبادتونه پدې وسیله اجـرا کیږي او هم په جګړو کې مونږ یې برخه اري .

# (هنر)

<u>د پوهانو په نظر کې</u>

هنر د ژونـد عصاره ده .
«بلوالری»

او ! هنر څومره لوی او ژوند څومره لنډدی. «ګویته»

هنر په طبیعت کې پروت دی او په هغه چا اړه لري چې د طبیعت څخه ئې راوباسي . «دورر»

هنر قوه ده . «لانکفلور»

هنر د سعادت و لـوری ته یو دعوت دی . «شیلتر»

هنر د ژونـد دودیـه نـه ده شراب ئې دی . «ربشتر»

هنر یو ډول ژغورنه ده ، چې مونږ ته له [غوښتنلو] یعنې له درد او خواشیني څخه آزادي رابخښي او دژوند انځوروته ښکلاو دلربائي ور کوي .
«شوپنهاور»

مونږ بدبخت نسل یو ، له همدې کبله له بیچاره ګۍ څخه ناچاره یو چې د هنر د دروا غو په مرسته ځان د ژوند له واقعیت څخه لیرې وساتو . «ژرژساند»

حقیقي هنر د انسان وجود او دده محیط په وجود راوړي.
«بایکرن»

هنر تـوله تـریه او واقعي هنرمندان ښه سره متحد کوي.
«بتهوون»

هنر د احساساتـو د تحریك محصول ، او هدف ئې هم د نفساني حالو او انساني عواطفو انتقال دی . «تولستوی»

دیـر وګړي هنر حس کوي خینې په پوهیږي . خو ډیر لږ خلک ئې هـم حس کوي او په پوهیږي . «ئي لارد»

هنر مقلدنه دی . «مازي نی»

شاغلی کندهاری «رشاد»

# قدرت

کله حسن او جمال یم په مخو کې　　کله سوز او محبت یمه په زړو کې
کله مشک یم د کبلیو په نافو کې　　کله وینې یمه غورځم په رګو کې
کله داغ د مینانو د زړګی شم
کله زوږ یم، کله بانې، کله ګل شم

کله مې زړونه له ګوګله وړه صنم شم　　کله مې ومونډ محبت د عشق عالم شم
که د ګلو پرمخ پریوتم شبنم شم　　که بیاغونډ شمه باداسکې وهم یم شم
مرغلره په آغوش کې د صدف یم
کثافت که مې پیدا کې بیا خذف یم

د سروګلو په شونډانو کې خندا شم　　د بلبلو په لهجو کې بیا ژړا شم
چې د زغ په صورت ښکاره مه ننا شم　　په فضا کې چې بیا خور کمه پرښنا شم
تیاره نو مم چې د شپې بالاه ښکاره یږم
بیا رڼا شم چې دور ځي خور ګند یږم

نوم د [مې] را باندې کښېږدې په ساغر کې　　سور یاقوت شم د ډبرې په تهر کې
آب مې بولي چې خور ګند شم په ګوهر کې　　جوهر نو مم چې بیا ښکارم په خنجر کې
که مې نه خندل د رڼ نغښتي غنچه یم
او که نه نو مسکې ګل او شګوفه یم

کله زیږ، کله سنبل، کله نسرین یم　　په یوه کور کې پیاده بل کې فرزین یم
د مردود و مجازات اره سجین یم　　د مقبولو مکافات اره برین یم
په یوه ځای کې او به په بل کې اور شم
په یوه بنه کې سپین بله کې تور شم

دسقراط په جام کې زهر شم خوا‌ږه شم — چې د خضر وار راځي دژوند اوبه شم
د سکندر د پرمخ تګ مانع تیاره شم — د موسی رهنمائی ته اور ښکاره شم

«یتیم» راولم پر مصرئې پاچا کړم
بیا دده «پاللی» ده اره بلا کړم

زور شا سمه و یوسف کنعان ته — بیا مسیح اره معراج سمه اسمان ته
«محمد» غوندی نور پاخوم جهان ته — بولهب ئې ورپېغور کړم خاندان ته

د بلعم په ځان بلاخپله دعا کړم
دقطمیر دسر بتوب موجب وفا کړم

کله جنګ ؤ اختلاف او عداوت یم — کله صلح، اتفاق او امنیت یم
دچا مانه یم، د چا سوبه، نصرت یم — یو سبب یم دچا ضعف دچا قوت یم

د [اویس] دغېلو شپون دغره لېوه کړم
پر ناترسو انسانانو هګ شیانه کړم

کله توره یم په لاس کې د جګړنو — کله دسردباسه سپریم دنیازمنو
ښادی نومه په زړو کې د ښادمنو — دردمې بولی په کوګل کې د دردمنو

کاهي تاج یم دوا کمنو پهٔ سرو کې
کاه تښا که یم دخوار په لاس ؤ پښو کې

کله اوښکې د مظلوم یمه بهیږم — کله ځک یم د ظالم ترخوله نوئیږم
یو ځای واك یم پر هر چا باندی چلیږم — بل ځای ضعف یمه و نورونه کښېږم

دچا عز ؤ حریت او کامیابی شم
دچا ذل ؤ اسارت او ناکامی شم

چې مطیع وی ترهرچا او کمن اسلام شي — چې لیږو ګرزی دبل مخلوق غلام شي
چې په ستر ګو کې ښکاره شم [لید] مې نام شي — خوندمې بولی چې په خولې کې مې مقام شي
کله روح یمه د خاورو په بدن کې
کله مړی یمه نغښتی په کفن کې

«نور په ۱۷ مخ کې»

ښاغلی ن

# شاعر

هغه ژغ دی چې بیده زړونه پاڅوي
په آهنګ ئې د آسمان ملکې نا څي

د بهار د عندلیب د زړه نغمه ده
د کاروان د جرس ښکلې زمزمه ده

د شپانه د پردیسي د نل آواز دی
د حکمت په دفترونو کې یو راز دی

ښه مظهر دی د سپېڅلو احساساتو
فلسفه ده د خروش رنګو کائناتو

د روحانو له دنیا سره آشنا دی
د بېلتون مړو ته دم د مسیحا دی

چې د آه سره وزي له سینې څه
تو یوي ویني د سترګو له چینې څه

د دردو نمایندهٔ د ځګر غږ دی
څیرونکی همیشه د کاڼه غوږ دی

د سرتورو و سرو ته حمایه ده
د یتیم و بې سابې سرته سایه ده

دی زګېروی د زګندن، ساندي د پورو
د ظالم پر کوټې کارګوی د تورو

د غريبو او غمجنو زړو قوت دی
د سرمستو بېدايانو نه آفت دی

چې د چا د بخت ډېوه شي به ده بله
تول وی د تاريکی هره کمبله

دغه ږغ دی چې به کوم ځای کې موجود سی
هره ورانه ئې آباده، به مسعود سی

---

## د ۱۷ مخ د نظم پاته برخه

کله ژوند يمه، هستی يمه، بقا يم — کله مرګ يمه، نيستی يمه فنا يم
د اشخاصو په نسبت مې شکل اوړی — بوقدرت يم چا ته درد چا ته دوا يم

دول دول مې جلوې دی بردې غولی
په رقم رقم نو مومې خلق بولی

---

يخې خبری

### ژوند

هر څوک چې کولای سي خوښ او خوشاله ژوند کوه او هيڅ وخت بېځايه او بې ګټې فکر خيل مغز ته مه پرېږده ځکه چې سلامتی دی تباه کېږی. [د يکنز]

کله به ژوند کی داسې ورځې راځی چې بايد فرصت غنيمت وبولی او ډېر ګټه ځينې واخلیء، نه دا چې کوتا بينه واوسیء او له فرصت څخه ګټه وانخلیء. [بالزاك]

انړی خيل څرخ تل په يو ډول څرخوی او د ژوند روابط دقيقه په دقيقه تغير پيدا کوی. [امرسن]

ژوند يعنی [تل پلټنه]. [لامارتين]



# پوره
# مور
# او
# ګوډ تیمور

دا نکل د روسيې د نسامتو ليکوال ماکسيم ګورکي يو دلندواو خوږو نکلو څخه دی چې د مور د مهربانۍ او شفقت حس ئې ډېر ژوندی پکښې ساتلی دی . ځکه مې وخپلې ژبې پښتو ته راواړاوه .
«هاروني»

دجهان لوی فاتح امير تيمور ګورګان په د [ کانهول ] دري نه په مېله اوسانېری راوني ء او هلته به ئې په عيش و نوش وخت تېراوه ، دا دره د آسمان ویوې ټوټې اوربخی نه ورته په سرو اود یاسمین په ګلو نو په داسې بوټیل سوې وه چې د سمرقند شاعرانو به د [ ګلانو کنبت ] باله او دې دري څخه د ورځرمه ښار جګې مناري اود مسجدو شنې ګومبتې دورا ښکاره وې . پنځلس زره خيمې به پدې دره کې

درولې سوې اودخيمو پرسر به
د ورېښمو رنګه بيرغان لکه
ژوندي ګلان رپېدل .
دتيمور خيمه به د نورو خيمو

په منځ کې داسې ايسېده لکه
يوه ملکه چې د خپلو ... يستو
مېزولو په منځ کې ناسته وي
دا خيمه څلور کونجه او هره

خوا به ئې دسلو ګامو په اندازه
اوږده وه جګوالی ئې دري
سرنيزې وو ، دخيمې په منځ
کې به دوراس داسې طلائي

ستنې ولاړې وې چې پنځوالی
ئې دانسان دجسم سره يو شان
وو ددې ستنو په وسيله به خيمه
ولاړه اوددې دپاره چې خيمه

باد چپه نه کې په پنځه سوو
سرو تناو به ئې په مځکه پوري
ټينګه کړې وه د خيمې پرهر
کونج به د سپينو زرو شاهينان

ولاړ وه او دخيمې په يوه لوړه
برخه کې به پنځم شاهين يعنې
بې مثله شاهنشاه تيمور چې ماتې
ئې هيڅ نه منل استاتو ، د

تيمور کالي به خورا ښايسته
اودآبي ورېښمو څخه جوړ سوي
او تر پنځه زره په زيات مروار يد
پر کار سوي وه سپينه ښه خولۍ

به ئې [ چې سوزني شاه کلاه ]
بوله پر سر او شنه ورېښتان به
ځنې راوتلي وه سري کوچنۍ
او تنګې سترګې به ئې هرې

خوا ته اړولې او هرڅه به ئې
په ليدل د سترګو وراندې ئې
لکه زهر مهره چې زهر وژني
ښه چاچې د سر کښېږي اوخود-

خواهی زهریت به ئې دراود
د تیمور د سترګو په کتو به دا
زهریت وژل کېدی . تیمور دوه
غوزوالی هم درلوده چې د

سراندیب (اوسنی سیلون) د
عقیقو څخه جوړ شوی اورنګ
ئې د ښکلی ځوانی ښځو او
شوانانو نه ورته ؤ، په خیمه

کې به ئې خورا د لوړی بیې
غالۍ هوارې او درې سوه د
سرو زرو جامونه او نور د پاچهی
د عیش او نوش سامان به مهیا ؤ

د تیمور وښی خوانه به سازند-
ګان ناست د مخ و خوانه به ئې
دده خپلوان، د ملکو خانان
پاچاهان او لښکری قومانداانان

ناست ؤ او تر تولو پسه نږدې
[کرمانی] نامتو شاعر مست
او مخمور د تیمور په وړاندې
ناست ؤ .

یو ورځ د دغه عیش او نوش او
ساز او صحبت په حال کې یو
زړه ربړدونکی آواز لکه
بریښنا چې په اوریځو کې
ښکاره شی د تیمور په دغسی
محفل کې واوریدل شو داز غ

چې د شهنشاه و غوږ ته راورسېدی
د یوې ښځې ؤ او دونه هیبتناکه ؤ
لکه د یوه زمری زغ، تیمور
پداسې حال کې واوریدی چې

د خپل زوی زخم ئې پر زړه
خوړلی او تول جهان ته به یه
قهر او غضب کې سره اېشېدی،
نو ئې وویل: چې دا زړه-

ربړونکی آواز د چا دی؟ پیدا
ئې کړی ! حال راغی چې یوه
بوډی ښځه نسوکر، نسوکر
کونجاړی کالی ئې اغوستی او

د درو دولتو پاچاهانو په عرض
راغلې ده . تیمور امر و کړه
چې رادې سی، یوه ښځه راغله
چې لڅی پښې ټوک ټوک کالی

ئې اغوستی د څګرد څولو د پاره
ئې ور پښتان پېز راځړولی د
مخ پوست ئې لکه اوسپنه تور
سوی دی په نازی ژبه خبری

کوی چې راغلې پېله دي چې د
پاچا او دده دربساری شان او
شوکت ئې تر تاثیر لاندې راولی
د تیمور و خوانه ئې لاسونه اوږده

و نیول او وئې ویل: هغه ته ئې
چې سلطان بایزید یلدرم دی

مات کړی دی .
تیمور وویل: هو! هغه زه یم چې
هم مې بایزید او هم مې نور ډیر
مات کړی دی، ستا څه مراد دی

وواېه ! ښځې په ډېر جرئت بیان
شروع کې او تیمور ته ئې وویل
ای پاچا ! دا خبره زما څخه
واوره ته چې په هر کار کې ئې

او هر څه و کې خو یو انسان ئې
زه یوه مور یم، ته و مرګ ته
خدمت کوې او زه وژوند ته
ته به د یو ښځې په ورځ یو و بنی-

تو یونکی او سلامت انسان
یادیږې، او زه به یوه مظلومه
ښځه، ځکه زه اوس غواړم چې
ته ددې خپلو ګناهانو جبیره

وکې مانه وبل سوی دی چې
تیمور وائی [توان هغه دی چې
په درد و خوری] خو زما زړه ته
ته لویږی چې ته دې زما په درد

وخوری ځکه زه یوه اسکېرلی
مور یم .

تیمور چې ددې ښځې و زړه ور-
توب او بې پروائی ته و کتل او
د کښېښستلو اشاره ئې ورته
وکړه او ورته وئې ویل: چې

هرڅه مراد دی وی راته ووایه ښځه د شهنشاه په وړاندی چار زانو کښېنستله او ورته وئې ویل: چې زه [دسالسرمو] د

اوسېدونکو ښځه یم دا ځای ډېر لیری دی زما پلار او مېړه دواړه ماهیګیران وه یوه ورځ دریابی غلو پرموږ حمله وکړه

او هغه دواړه ئې مړه کړه زما دزړه سر او ښایسته زوی ئې هم ژوندی راڅخه یوړی داځلورم کال دی چې د هغه په تلاش کې

لالهانده، سرګردانه یوې خوا او بلې خواته ځغلم چې دادی اوس دلته راورسېدلم . تېمور چې دښځې څخه د زوی کلمه

واورېدل نو ئې واسه پلل او په زړه کې ئې وویل: [لکه زما زوی جهانګیر] ښځې بسې زیاته کړه چې زما زوی اوس ستا په

لاس کې یولم ځکه د [بایزید] لښکر و هغه دریابی غله نیولی وه

او تا بیاد بایزید لښکریان مات او بندیان کړه هرڅه چې ئې

دراوده ځنی چور دی کړه په هغو کی به دی زما زوی هم

راوستلی وی اوس هغه ماته را وسپاره چې زړه می ددې دبېلتون څخه د کوټلو وښودك دی.

تر اوهغه څوك چې د تېمور په مجلس کې ناست وه دښځی پر داسې خبرو ئې وخندل او وئې ویل: چې داپوهېږه ده خوبوازی [کرمانی] شاعر وویل: چې

هو: پوهېږه ده مګر داسې نه لکه تاسې چې فکر کوی بلکه پوهېږوب ئې دموږ والی پوهېږوب دی او د ګران زوی د بېلتون پوهېږوب دی.

تېمور و ښځی ته ووېل چې تا دا اوږدې لارې، دا دښتونه ځنګلونه او غرونه څنګه طی کړه بداسې محالو کی چې

انسانان ئې ترځناورانو درنده د [illegible] څنګه رانېږه شوې ئې؟ دا وخت هم کرمانی شاعر وویل: چې په عشق کې دخطر اوداوږدو

لار وحساب څوك نه کوی ښځی په هغه خپله خبره تکرار او وله

چې پاچا زما زوی پلاس راکه زه به مور یم او دزړه قوته می

راڅخه بېله شویده.
[رشتیا چې مور دډیری ستاینې

او لمانځنی وړ ده په دنیا کې هیڅ مهربانی نشته چې دمور د مهربانی سره دی برابره سی د دنیا پاچهان، قهرمانان، عالمان

شاعران او اوی لوی شخصیتونه تر اوله دمور حاصل دی.
کرمانی شاعر: رشتیا باید موږ منندی په لوړ عزت او تعظیم ومنو

ځکه دجهان برجسته اشخاص تر اوله ددوی په غېږ کی روزل سوی او جهان ته ئې ددوی د ګټی دپاره وړاندی کړی دی

نن ورځ چې په دنیا کې هرڅوك په لوی عزت او منزلت پېژنو دا دمور حصول دی.
تېمور چې دمور په باب کې دا

وارو پدل څه وخت په فکر کی ډوب سو او وروسته ئې امر وکی چې دری سره چابك سوارلیان دی ددې ښځی په زوی پسې

رهی سی او هرچا که راوستی هرڅه چې غواړی زه به ئې ځنی

ونه کړ زوم، زه یوه مور چې دا ښځه ولی داسې پوهېږوب کوی

ولی داسې په دلاوری او بې-
پروائی زغیږی دا ځکه چې

موږده او د زوی ور کېدو ئې سدؤ بد ځنی وری دی، د زوی پېلتون ددې په زړه کی یو سوځوونکی اور بل کړی دی

ددغه اور په قوه کولای سی چی د ژوند تر آخره پوری د زوی په تلاښ کی ځان ستړی او ستوماته کی، خو دا ستړیا به

حس هم نه کی بلکه ددې تلاښ اور به ئې نورهم پسې تازه.

کرمانی تر تولو د پاچا په دې امر او خبرو خوشاله سو او لاندې

شعر ئې وواېه .

« تر هغه نغمه اورم چی ناقراره زړه څخه آرام ور کوی او په آرام زړه کی هم خوشاله

کوونکی تپورمانځور راولی دا د محبت خبری دی او سرپېره ئې د یوه داسی ځای څخه دغه چرهلته بیله محبت، ز بیاتی او

خوښی ؤ خندا څخه نور څه نه لیدل کېږي، ما داسی نغمه بل

وخت نه وه اروېدلې آیا دا د ناز کو ګلانو د پانو ژغ دی

که د آسمان ستورو په خبرو بیل کړی دی دا رشتیا بایه د

زړو نو نغمه و بو او ځکه د معشوق و خنداؤ راز او نیاز نه هم ور نه

ده او که بل نوم پر ایږدو نو د موروالی د حس خبری دی .

تیمور و کرمانی ته آفرین ووایه او وئې ویل: چی ته د

خدای تعالی بهترین صنعت ئې او پاك خدای چی د خپلو حقایقو

داظهار دپاره سته ژبه تا کلې ده هغو ئې .

حقیقتاً چی کرمانی شاعر هم یو حقیقی شاعر او خوږ ژبی انسان

دی ځکه یو وخت چی ګوډ تیمور ددهٔ سره یو صحبت کړی

دی دا صحبت په دغه کی د یوه عالیقدر شاعر مقام ښکاره کوی

هغه داسی دی:

تیمور ورته وویل: که ئې زه

خرڅولم په څو به مې رانیسې؟

شاعر: په پنځه ویشت تنو سره بالا

زانو دې رانیسم .

تیمور لږ څه په قهر ورته وویل:

چی دا خو یوازی زما د ملا

بیه ده .

کرمانی وویل: نو څه چی ارې هم دغه ملا ارې نور نو په یوه

پول نه ارزي .

ددې نکل لیکوونکی [ما کسیم

ګورکی] وائی: چی تیمور یو خورا لوی پاچا او یو قهار

انسان تېر سوی دی دا خبری چی شاعر ورته کړی دی د

هرچا د وسه پوره نه وی نو که زما په خوا وای ما به د

تیمور تر شهرت ددغه شاعر شهرت زیات کړې وای ځکه

چی تیموری شاعر د شاعری مقام او د شاعری د ژبی بت

داسی ساتلی دی چی هغوی مجبوره کوی چی بایه د

شاعری مقام ډېر وستایو خو دا هغهٔ وخت چی دوی د

خیالی ژبی څخه ښه استفاده کړی یعنی حقیقت ئې په

ډېر جرئت ښکاره کړی وی لکه کرمانی شاعر .

# تاریخي آثار

## د میرویس کلا

بناغلی شیر احمد

حاجي میرویس خان چې په حاجي میرخان سره هم مشهور دی زموږ د وطن د خورا لویو او نامتو کسانو څخه دی . حاجي میرویس لومړی سړی و چې خپل وطن یې د پردیو له چمبې څخه خلاص کړ

هغه وخت چې یې دخپلې مینې آزادي وکتله او د خدای شکر یې پر ځای کړ او ویې ویل: چې د وطن استقلال هغه وظیفه وه چې ماته دخپلې مور له خوا سپارل شوې وه زه اوس د هغې شکر کوم چې دمور نصیحت مې پر ځای کړ .

حاجي میرخان چې دخارجیانو له کشمکش څخه خلاص شو نو د وطن د اصلاح او امنیت ته یې توجه وکړه د وطن په عمران او نورو چارو کې یې ډېره پاملرنه درلوده ده د وخت دعمراناتو څخه

ده هغه شخصي کلا ده چې د کوهکران په کلي کې دارغنداب د رود پر غاړه پرته ده .

ددې کلا د جوړښت څخه تراوسه درې سوه کاله تېرېږي مګر تراوسه پر خپل ځای ښه کوم [illegible]

څخه ولاړه ده د ځینې تاریخي بلګو نو څخه معلومېږي چې د کرکین مېلمستیا هم په دغه کلا کې وه .

دا کلا د یوه مربع په شکل ده څلور سره ضلعې یې سره مساوي دي د دېوال ارتفاع یې لس متره رسیږي ، عرض یې په تهداب کې یو متر دی او په اخیري ګز کې د [۴.۳] متر دی . دا کلا تقریباً په دوه جریبه ځمکه کې ودانه شوې ده د دېوالونو یې که څه هم د ښو موادو څخه جوړ شوي دي مګر

خوراتینګ دی . ددې کلا په جوړولو کې داسې یوه مفکوره موجوده ده :-

هغه ختې چې دا د دېوال پرې بنا شوی دی د پیلانو په واسطه پخې دل تر له ورځ به پیلان پرې ختل

ماښام به یې بوتا کلې اندازه په او بو کې چې روانې دې اېښوې سهار به یې بیا هغه تللي که به نه وې کمې شوي نو هغه به یې په د دېوال کې مصرفول . په دې کلا کې کومې ودانۍ چې تراوسه د هغه

وخته پاتې دي تراوسه هم پر ځای پاتې دي اوس هم د استفادې وړ دي ددې ودانیو شمېر پنځو خونو ته رسیږي اولي خونې د کر کیو ځایونه اري مګر اوس هغه کر کیږي د ښوونې له خوا خوړل شوي دي

دې کلا دوې دروازې درلودې چې یوه یې د سړو او بله یې د پیلانو وه . د پیلانو خونه اړ ېدلې

مګر ځینې برخې یې اوس لیدل کیږي . د کلا په ځینو برخو کې کچ او سارو هم کارشوي دي نور

هغه شیان چې د یوه مشرد کور د پاره لازم وې د زمانې د ډېروالي او د خلکو د بې پروائې په اثر له منځه تللي دي دغو او په دېوالو کې داسې خښتې کار شوې دي چې څه هم د پخو خښتو سره شباهت نلري مګر خورا ټینګې دي د دې خښتو څخه اوس هم کار اخستل کېږي دا خښتې علاوه پر دې چې محکمې دي خورا لوې خښتې دي چې دا ډول خښتې اوس نه استعمالیږي. د معماري طرز ئې هم خورا ښه دی .

د کلا جغرافیوي موقعیت هم ښه دی دا د غره په لمن کې نژدې د یوه رود ته تعمیر شوېده په شاوخوا کې د کلا هم ځینې باغونه او مېوه لرونکې ځایونه چې د تفریح لپاره وه لیدل کېږي مګر دا باغونه اوس په شخصي باغو او مځکو تبدیل شوي دي په دې کلا کې ځینې تشریفاتي ځایونه هم جوړ شوي دي له دې څخه معلومیږي چې میرویس خان ځینې دعوتونه دلته کول .

دا کلا د کندهار د اوسني ښار د غرب و خواته تقریباً ۱۵ کیلو متره لېرې واقع شوېده .

د دې کلا د شمال پخوا کې یو مسجد چې د دې کلا هم عصر دی ودان شوی دی دا مسجد که څه هم په ډېر ساده ډول جوړ شوی دی مګر یو خاص تاثیر اري. د ځینو د پلټونو څخه معلومیږي چې د دې کلا بنسټ خښته د لوی شیخ بابا ولي صاحب په لاس ایښوول شوېده له دې څخه معلومیږي چې بابا صاحب د حاجي میرویس په دربار کې یو خاص عزت او احترام درلود .

د میرویس د کلا په شرق کې یوه خورا لوړه جوړه ونه ولاړه ده چې د همدې کلا هم عصره ده .

دا کلا اوس د هوتکو د قوم څخه د یوې کورنۍ په لاس کې ده چې خپل ځانونه د حاجي میرویس د لمسیانو څخه بولي .

دا یقیني معلومات ما ته نشته چې دوی په کوم ځای کې و حاجي میرویس خان ته رسیږي مګر د تاریخي تحقیقاتو څخه دا معلومیږي چې دا اوسني خلک په رښتیا د میرویس خان د اولادې څخه دي او ډېر زیات ګمان پر دې کیږي چې دوی د حاجي میرویس د اور داولادې څخه دي .

د دوی قرابت نسبت و میرویس خان ته له دې ثابت دی کله چې ۲۵ کاله د مخه محمد ګل خان مهمند د کندهار تنظیمه رئیس ؤ او غوښتل ئې چې د میرویس خان د مقبرې احاطه پراخه کړي نو د دغو موجوده کسانو نیکه چې غلام محمد نومېدی خپل ځان ئې د ځینو دلائلو په اثر د میرویس خان د اولادې څخه معرفي کړی نو ئې د حکومت څخه د څه مرستې غوښتنه وکړه هغه ؤ چې حکومت هم د حاجي میرویس په احترام و دې خلکو ته د ارغنداب په غاړه کې څه جریبه مځکه ورکړه او هغه مځکه تراوسه پورې د دې خلکو په تصرف کې ده .

میاشتې تر واده د مخه د واده درب ؤدروب شروع کیږي کالي رغیږي کوروته جوړیږي او د میلمستیاؤ له پاره کوښښ کوي

چې په هره وسیله وي دېرې پیسې برابرې کړي هره کورنۍ کوښښ کوي چې په سیالداري کې تر هغه بلې کورنۍ ئې واده

مجلل وي تر له هغه ښځې که ئې آواز ښه وي که بدې بدلې وائي او په نارو او بوغارو پر همسایګانو خوب حرام کړي

همسایګان هم مجبوروي چې باید په دغه وخت کې پر خوله د سکوت مهر لګوي او څه باید ونه وائي ځکه دوی پوهیږي

چې د دوی نوبت هم راسیږي چې د هغو پر سر دغسې بلا ور شپوه کړي زموږ مشرانو فکر کړی ؤ چې زمادواده له پاره باید منظم

ترتیبات ونیسي او د خرڅ د کموالي په خاطر باید دا درې

و ونه په بوشپه وسي ځکه د درې ودو له نیم مصرف څخه بو

حدراقوق له دې واده څه نه بېزې. زمابلار اوا کا چې بیخي د پر

زاده سوی وه او موږ ئې د روستی اولادو نه ؤ نو ئې ارمان ایستی چې باید داوروستي ودونه په ډېره خوشالي تېر کړی په دې

پهتاسې پوهیږئ چې مانه دې واده غیر له ښو خوږو خوړو او د ساز درنګ ؤ درونګ او نوی کالو څخه بل څه قیمت نه

در لود، ځکه ما په دغه وخت کې شهوت پېښې نه پېژندې اجازه راکړئ چې د لته د خجالت له مخې تر څو قصو تېر سم او هغه

په چندانې تاسې نه دلچسپه هم نه وي خو د مثال په ډول به ئې یوه مضحکه برده بیان کړم مثلاً کله چې ئې دواده په ورځ

موږ د راج کوټ څخه پسور بندرته بیولو سرتر بابه ئې د کور کمنو پسه خبره ولړلو زمابلار چې وزیر ؤ او د تا کور

[د هغه وخت اوی شاعر] سره ده علاقه درلوده نو پدغه وخت کې د

هغه سره په مجلس ارؤ کله چې هغه وروت ګاډی ئې راوغوښته

او وي ویل : چې پور بندرته باید په دوې ورځو کې ورسیږو

د راج کوټ او پور بندر تر منځ ۱۲۰ میله مسافه ده او هغه به ګاډی په پنځه ورځې طی کوله خو څرنګه چې زمابلار چابکي

کوله نو پور بندرته ژر ئې په دریمه ورځ ګاډی مانه شوه او پلار می سخت ژوبل شو، کله چې دواده ترتیبات شروع شوه

زمابلار سرتر پایه پوه دزخم بندیه پټی ووه، داهم نه کېدل چې واده معطله شي نو تر له په یوه مغاز تګېدو او خوشالي مو

په دې پر بدله سوه.
تراوسه چې زه هغه صحنه را بیادوم زړه می د کوتلو وبغو ډک شي او پر بدن می د شرم څخه

خولې راماتې شي.
دواده په ورځ می پلار که څه هم د پر په تکلیف ؤ خو د خوشالي د پاره ئې په مراسمو

کې ګډون کړی.
په هغه ورځ که څه هم تر له شیان

ډېر خوشاله وه خو زه نه پوهېدم چې ما پخپله یعنې څه ده او س

زما هېر دې چې څرنګه په څه
[نور په ۲۷ مخ کې]

# ښاغلی

# عبدالحی

## «حقیقی»



ښاغلی عبدالحی «حقیقی» دا چې چهره ئې پهٔ دې مخ کې لیدل کېږي د مرحوم حاجي محمد افضل زوی په خته علیزی او په ۱۳۱۸ش کال د کندهار په ښار کې زېږېدلی دی. کله چې زه د میرویس

بابا په لیسه کې زده کوونکی وم ده هم د زده کوونکو په ډله کې څرګند او کوښښ ئې په ټولګي کې لا ډېر ښکاره ؤ. یو هم دغه ښاغلی حقیقي ؤ دا خواري- کښ او ځیرك زده کوونکی په دې ترڅ کې چې

خپل درسونه به ئې په ښه توګه وسرته رسول د لیسې په اوه ورځنۍ کنفرانسو کې به ئې تر ډېرو شاګردانو لویه برخه اخیستله او همداسې د کندهار د طلوع افغان د ورځپاڼې سره ئې

خپلې قلمي مرستې جاري ساتلې وې چې د نوموړې ورځپاڼې د ډېرو کلو کلکسیونونه زما دې خبرې تصدیق کوي.

ښاغلی حقیقي یو هم طبع، خوش خلقه او ډېر ښو

اخلاقو څښتن دی؛ د ښارانو او ملګرو ئې تل احترام کړی دی. نوموړی په ډېر کوچنیوالي

په شخصي توګه په سبق ویلو ګمارل سوی او چې عمر ئې د [۹] کالو په شاوخوا کې ؤ د کندهار د تیمورشاهي ښوونځي د دوهمي ټولګي ته شامل

سو د دې ښوونځي د دریمې ټولګي تر ویلو وروسته د یوه هغې د مدیریت له خوا د میرویس بابا لیسې ته تبدیل او هلته ئې تر نهمي ټولګي پورې لوست او تحصیل وکړ. دلسمي، یوولسمي او دوولسمي

ټولګیو دپاره چې پدې لیسه کې نه وې د احمدشاه بابا لیسې ته واستول شو. ښاغلی حقیقي وائي: چې د تعلیم پدې دوره کې د ژوند ډېرو مشکلاتو راته مخ ؤ خو د هغې مفرطي مینې په وجه چې ما د

ښوونځي او زده کړې سره درلوده تر ډېره ځایه پاته ی مسلط وم مګر یو لوی مشکل چې پر ما ئې بری وموند او زما د ډېرو آرزوګانو ئې را نیمه خوا کړی هغه زما د مرحوم پلار مرګ ؤ دا پداسې

وخت کې چې زه د دوولسمي ټولګي څخه فارغ سوی او د فاکولتې په هیله می دقیقې او ساعتونه

شپېرل، د بلار سرک ماته
ښځي لویه ښېښه او صدمه وه ځکه
بداسې وخت کې چې بابه خپل
تحصیلات مې پوره کړي وای

زما د کورنۍ چې د شپېږو تنو
څخه عبارت وه ټوله احتیاجات
او ساتنه رادغاړې سوه، دا یوه
روښانه خبره ده چې دخوراك

او پوښاك سوال مخ ته راسي
نوري خبري ټې تحت الشعاع
واقع سي. زه پوازې به پوازې
پدې فکر کې وا او پدم چې زه

او زما کورنۍ ساتنه او د
ژوندانه احتیاجات غواړو او
د یوه داسې کار په تلاش کې وم
چې هغه څووږ ځې دمخه زما د

ارتیاؤ جبیره وکې. په‌غوږو ختو
کې مې دا خبره تازه وغوږ ته را
ورسېدل چې [د آریانا افغان
هوائي شرکت] غواړي چې د

خپلو الوتکو چلولو دپاره افغاني
پېلوټان ولري نو مې د ملګرو

سره سلا وکړه چې زه هم کشکې
پدې ټول کې مراجعه وکړم

بالاخره که مې ملګري وه که
مې هرڅه وه سلاښې رانه کړه

# د پنځه وېشتم مخ پاتې برخه

ورل د [سپتابادي] مراسم پر
ځای سوه [سپتابادی د هندوانو
د واده په مراسمو کې هغه
مذهبي دود دی چې د نکاح پر

وخت ناوی او زوم اوه قدمه یو
ځای پرلاري سره رهی کېږي
او د وفا او صمیمیت قول سره
کوي او پر اووم قدم داسې

تلقي کېږي چې نکاح ونړل
شوه.]

او دا هم هیڅ و یادنه نسم راسي
ورلای چې څرنګه مو کنسار

[دغه مو دا ورو څخه یوه شېرینې
ده چې د نکاح پر وخت ټي
زوم او ناوي یو د بل په خوله
کې سره ورکوي] پسر ځای
شوه.

آه له هغې او سري شپې څخه
دوه معصوم کوچنیان، پېلا کوم
هدف او مقصد څخه د ژوند

طوفاني اوقیانوس ته ورشېوه
شوه. د واده په اوله شپه مې
ورپنداري یو څه راښوولي وه
او ما اندېښنه چې مې هم کوچني

انجلۍ وه هغې ته باهم پر چا څه
ورښوولي وه، خو داچې کله
موږ سره مخامخ شو و هغه خبري
ګرده ولاړې او پر دواړو شرم
او حیا غلبه وکړه، د ډېرستړیا
څخه بیده شوو.

وروسته نړدې ځکه چې زموږ
سن و واده ته مساعد نه و نو
هیڅکله ما خپل ځان ته د یو
مېړه په حیث تکلیف ورنکړ

او هغه هم یوه انجلۍ وه چې په
هیڅ نه پوهېدله، کم څه هم
وروسته مو یو د بله په خبرو پیل
وکړ مګر یو پر بل سره بارو

څو دژوند په آخرو ورځو کې
چې دواړو د اجتماعي فلسفي
پر اساس فکر ته ورسېدو، نو
مو ګذاره وکړه.

خودا دی پته ناوي چې د کم
عمر په ورځو کې واده ته پواځې
بې خونده وي بلکه ژر زړونه
سره ساړه شي او دا نو د ژوند
تریا به پوټه تمامېدونکي شخړه
په وجود راولي.

نړدې حده چې یوه دسپین ږیرو
متملقینو څخه رانه وویل: چې

آیا پر مځکه رزق لږ دی چې
۲۸۵ مخ کې

ته هرانه بـې الوزې؟ اوهم مې يوه لهملګرو څخه پهتوکه راته وويل چې: [ترکانې دېيزو کارنهدی] خو زما عزم او اراده پردې خبرو غالبهوه او قطعي مې دا کار په برخه سوی ؤ

نومې ځان وتوموډی شرکت ته معرفي کړ او هغوهم ترڅه ازموینو وروسته د الوتنکوچلوا‌و د يوه زده کوونکی پهتوګه ومنلم څه وخت وروسته ئې کابل ته ولیږلم چې هلته د څلورو

میاشتو دپاره ددې کار پهاړه يو کورس ووایم د کورس تر بشپړه اکېدو وروسته د مربوطه

تحصیلاتو پهمنظور امریکا ته ولیږل سوم هلته مې دوه کاله تېر کړه او دا لاندنی لائسنسونه

ولاس ته راغله.

PRIVATE,COMMERCIAL
A.S.E.L,
COMMERCIAL A.M.E.L,
INSTRUMENT
DOUGLAS DC3

ددې وروستي لائسنس دلاسته راوستلو په وجه ما هغو ملګرو ته ثابته کړه چې هر کار

کېدونکی دی خو ټینګ عزم او متینه اراده غواړی زه هغه چاته چې زه ئې ددې کار څخه

منع کولم غواړم چې داسې خبری د انساني او بشري ترقه د پرمختګ مانع وی باید حذر

ځنې وسی.
داګړی چې زه ددې څو کرښو په لیکلو اګیا

یم په ځپل مملکت کې دیوه پیلوټ په حیث خدمتګار یادېږم. دازما پوخی ټینګه آرزو

او بلکل اساسي مرادؤ چې زه دخپل ګران هیواد او محترم ولس یوخادم سم.

نو پدې ترڅ کې د لوی خدای (ج) څخه هیله کوم چې د محترم حکومت دغوآرزوګانو

په پوره کولو کې په پوره طاقت او اخلاص بټه تراسه یم و اوسو او کوم د خدمت امیدونه چې

د مملکت د ځوانانو څخه کېږی پهڅېره توجه ترسره شی.

داوه د ښاغلی عبدالحی حقیقی د پېژندګلوی څو کرښی کهڅههم ددوی دا پېژندنه د یوه

لیکوال اوادیب پهحیث ودغه‌که چېوختدېږ اندؤ نومو ده کوم آثار وراندې نکړای سوای

نولکه دمخه چې مو دې خبری ته اشاره وکړه په طلوع افغان کې ددوی په قلم لیکل شوی

مضامین او ګڼوری ترجمې په زیاته بیا په ۱۳۳۳ ش کال ئې یوه اوږده سلسله ترجمه د

[لویا نوونیاوی] پهعنوان خپرې سوی دی.

جبران خلیل جبران

د ښاغلي «آرین» ژباړه

د دیــــوه پرانــــده

# شاعر نغمه

په دوا ړو سترګو روند یم . د روښانه او ځلېدونکی لمر نو دي ورانګي چې ستاسې نړۍ رڼا کوي زما بدن هم د خوبو په ژورو تیاریکیو کې په غېږ کې نیسي .

د ژوند مظاهر زما له مخ څخه تښتي . د دې حرمان برخلاف زه خپله لار پلټم او مخ نه ځم .

دا لکړې په مرسته ګامونه اخلم، په داسې حال کې چې ستاسې غوږونه د آس د سرواله آواز څخه خوندا خلي او نسبت ما ته مغرور کېږي .

زه د نیاري دوادي په زړه کې چې تو لو ځایونې توري جامې اغوستې دي، خپله د ننګ لار بیسې وهم او نه بېرېږم . .

خو تاسې په خپله روښانه نړۍ کې له هرشي څخه حتی د رڼا څخه لا په وحشت کې یاست . هیڅ وخت خپله لار له ورکوم ځکه تاریکي زما د پاره لکه ستاسې د پاره روښنائي داسې ده . هوا نیاره، هرشونی چې له غلیظ نوروالی څخه د که وي، هرځای چې کوم مانع او خنډ مخ ته راسي خدای ما په خطر پوهوي او ما ژغوري .

شکرفي او ګلان زما د قدمونو ځانونه را ژدي کوي .

دا وخت دی چې د دوی معطره وږمې او زړه غوړ ونکی بوی زما روح پر وجد او خوښي را ولي په نشاط کې کېږم او تر هغه په لوړ عالم کې چې تاسې ئې په خپلو دوو سترګو سره وینئ، لوړ پېږم روح نه پروریښت ور کوونکی نغمې او ترانې می دا نیر د آسمان پر سر تېرېږي .

* * *

سترګې مې د بــاغو او د آسمان او ځنګلو د ښکلیو منظرو له ننداري څخه تړلی دي . د بې مخو ښکلیو لیدنې د پاره د دید قوه نه لري خو ونې مني چې روح، رګونه او شریانونه مې لکه مقناطیس دا ښکلاوې جذبوي او زما نړۍ ستاسې له کهکشانو څخه نږدې کې نړۍ لویه ده . څوك دی چې زما د زړه روښنائی او د جمال عواطف له ما څخه بېل کړي؟ خلاقه قوه را څخه واخلي؟ دوی وا یې: «د بېچاره او بېنوا» د سپوږمۍ، لمر او ښیه رڼا کوونکو ستورو د لیدلو قدرت نه لري

نور په ۳۰ مخ کې

دچینی ادبیاتو څخه:

## د څلورو فصلو ترانه

ژباړونکی محمد احسان «کارگر»

«پسرلی دی»

دولې روانی او به ورو ورو بهیدلې، ښکلې ښځه د گلانو په ننداره لگیاده، دهغې نازک لاسونه لکه پتنگ د گلانو پر مخ دوری هیسته کیده. یو سپور سړی تېرېدی او هغې ته ئې په غور کتل. ښکلې گل نوانکی ښځې په نرمه لهجه ورته وائې: «ښاغلې ښائې لطفاً پر هغه لار ولاړ سې؟ ځکه ستاسی آس زما دچمن گلان تر پښو لاندې کړی».

«دوبی دی»

د رودخانې تر اوبو لاندې نیلوفری گلانو نیولې ده یوه ښکلې ځوانه نجلۍ د دلې دونی تر سیوری لاندې په خپلو خوږو خوبو کی ورکه ده، دغلانو یوه ډله کی گیښتی چی ورته نه نژدې وه ورته کتله چی کله به لار وباندې لیری کیږی.

«منی دی»

ښځې په ډېره خواشیني سره د رودخانې و څنگ ته ناستی کالی مینځی، د درختو پېژی پاڼی به دوی ته کوته کوته توییدلې چی آخر به کالی پرېوالکو هر گری ځای سره الیشاوه.

وختی چی ددې ناامیده سترگو ته می وکتل، په زړه کی ئې ویل چی: «جنگ به کله خلاص او زما میړه به بیرته راوگرزی».

## «دیو ویرانده شاعر نغمه» پاته برخه

دی په باغو کی پر گلانو د طلائی پروانو ننداره اسی کولای. څه عجیبه بدبختی.

بیچاره، بینوا، او خوار هغه دی چی غوږونه لری خو نه اوری. سترگی لری، خو نه وینی.

زه سترگی نه لرم خو زما نور حواس دسترگو د کار کفایت کوی.

زه نه غوارم چی د ترحم او شفقت په سترگو راته وگوری. که د ظاهر سترگی نلرم خو د باطن سترگی می روښانه دی او کار کوی.

بیچاره تاسی یاست چی د خدای تر نعمتونه مو عاطل پرې ایښی، کفران او ناشکری کوی.

وو اباست تاسی د نور له دې دوو ځایو څخه چی د مکر، فریب او فساد څخه ډک نړیه گرزی ئې پر تاسی پرانیستلی دی. پرته گمراهی او تباهی څخه نور څه اری؟

خوشبخت زه یم کمرغه دی ړانده چی ستاسی نړیه نه وینی.

«ژمی دی»

نن سهار قاصد پتنگ غواړی د جنگ میدان ته ځی، ښځو تر له داور څنگ ته ناستی او ده ته ئې تاوده کالی گنډی، خیلی ښکلی گوتی ئې له یخ وهلی ستنی او غیچی سره آشنا کړای او س هغه سهارنی یخ، چی د هغو تر ستنی او غیچی ښه ترا یخ دی راوسیدلې، لیکن هغه قاصد پتنگ به هغې ځکی ته چی د هغه او میالی میړونه د جنگ په حال کی دی، آیا ور سیږی؟؟

# «د ښاغلي سردار محمد داؤد د پيغام د متن» پاتو برخه

ارزو وز خوندور ته دامیسره شو، هغه چې
ورځ په ورځ زیاتېدونکې اندازه د
وطن په وظایفو او زموږ د ټولنې دور ځنې
ژوندیو ورځیو اعمالو کې کډون وکړی.
زموږ د مملکت د معقول انکشاف هغې د
افغانستان د اقتصادي وضع او اجتماعی
شئونو د متوازن کولو د پاره زما او زما
د همکارو ملګرو په نزد د پرېښکاره
ضرورت ایدل کېدی چې د همدې مطلب
د پاره هم د افغانستان د اساسی قانون
د ترمیم، د انتخاباتو د قانون د تدوین
د دولت د تدریجي ګړنو قرارو په جلاوالی
کې د یوې واقعی او کلکې دیمو-
کراسۍ د روی کارولو په هکله یو
پېشنهاد د معظم ټولواك همایونی
اعلیحضرت حضور ته وړاندی کړ شوی.
زه هیله لرم چې د لوی خدای په مرسته
د افغانستان خلک په خپل اجتماعی
شئونو کې هم ځان په مقامات سره هغه
عصر ته نژدې کړی چې ژوند یې کښی
کوی د په او په نېکمرغی وی چې که
دولت به را تلونکي وخت کې د اسی
هدف ته په خپله خطمشی کې ځای ورکړی.
په دې وخت کې چې خپلې د ډېرې ښې
آرزوګانې خپلو پښتنو استانو ورنو
ته وړاندی کوم او هیله لرم چې د پښتو-
ستان خلک د خپلو مقدسو آرزو-
ګانو په ترسره کولو کې بریالی شی.
په داسی حال کې چې وظیفه پر ځان د
د خپلی قدردانۍ د صمیمی مراتب

خپلو ګرانو وطنوالو د افغانستان
خلکو او هغه منورو کسانو ته څرګندوم
چې د مملکت د انکشاف په لار کې ئې
زه سره هڅه کړې او ملګری توب کړیدی.
زه د خپل ګران وطن خدمتګار وم او
یم هر چېری چې او سم زما زړه او روح
د خپل هیواد د خدمت د پاره دی، دا
پېژوندکی زه یوازنی آرزو وه دی او وی به.
په پای کې د همایونی اعلیحضرت روغتیا
او بریالیتوب او د جناب نوی صدراعظم
او د هغه د محترمو همکارانو موفقیت د
وطن د خدمت په لار کې د لوی خدای له
درګاه څخه هیله کوم. دعا کوم چې د
افغانستان نجیب ملت ورځ په ورځ
زیاتېدونکی صورت سره د خپل ملی
نېکمرغه ژوند په تکامل کې بریالی شی. باختر

کندهار:— د افغانستان د خواخوږی او زیار کښ صدراعظم ښاغلی
سردار محمد داؤد د ستر و خدمتو نمانځنه کوی چې
ده د وطن د اودانۍ او پرمختګ په لار کې ئې کړی
دی. افغان دلس ددوی د هغو زحمتو او زیار-
کښنو مرهون دی چې موصوف د ګران افغانستان
دودو د ستو و نهضتو او د بېلا بېلو اقتصادی او
عمرانی پرمختګو په لار کړی کالی دی. یادې
ده د وطن د ... کولو د پاره د اقتصادی پنځه
کلنو پلان و په باره کې ددوی ابتکار او د عملی
کېدو د پاره ددوی د کوښښونو ... قدر کوی او
ددوی دوره د افغانستان د تاریخ یوه روښانه
دوره بولی.
دغه دول (کندهار) و ښاغلی دوکتور محمد یوسف
نوی صدراعظم ته ددې ... او درنې وظیفې د
ورسپارلو تبریك وایی او له پاك خدای څخه ئې
د معظم ټولواك د لارښوونې په رڼا کې ده د هیواد
د اعتلا او ترقی په لار کې په ورسپارل شوی
وظیفه کې پوره او موفقیت غواړی.

KANDAHAR

MONTHLY MAGAZINE

OFFIC[illegible]

PRESS DEP[illegible]

KANDAHAR, A[illegible]N

EDITOR A.M 'KARZI'

(MARCH) 1963

GOVERNMENTAL PRESS